# نیمګړي ارمانونه

(د ولسي شاعر محمد عالم حیران د شعرونو جونګ)

راټولوونکی

محمد اسمعیل یون

# بسم الله الرحمن الرحيم

## کتاب پېژندنه


| | |
|---|---|
| د کتاب نوم: | نیمګړي ارمانونه |
| شاعر: | محمد عالم حیران |
| راټولوونکی: | محمد اسمعیل یون |
| خپرندوی: | یون کلتوري یون |
| چاپشمېر: | ۱۰۰۰ ټوکه |
| لومړی چاپ: | ۱۳۶۹ل کال |
| دویم چاپ: | ۱۳۸۷ل کال |
| د راټولوونکي پرله پسې نومره: | (۲) |
| د خپرندوی پرله پسې نومره: | (۲) |
| کمپوزر: | ضیاالرحمن ضیا |

# نیولیک

# د دویم چاپ سریزه

دا شعري ټولګه چې ستاسو په لاسو کې ده، دا د لغمان د یو متوفی شاعر، خدای بښلي محمدعالم حیران، د هغو شعرونو مجموعه ده، چې له نن څخه (۱۹) کاله وړاندې پر ۱۳۶۹ل کال، ما راټوله کړې او پر همدې کال مې په کابل کې چاپ کړې ده. د حیران دا شعرونه ما د نږدې یو کال په بهیر کې هماغه مهال له بېلابېلو لارو، چې ددې ټولګې په سریزه کې ورته اشاره شوې، راټول کړل او پر همدې (۱۳۶۹) ل کال مې د هغه وخت د حکومت د فرهنګي موسسو بېلابېلې دروازې وټکولې، چې دا شعرونه پرې چاپ کړم، خو د چاپ امکان یې برابر نه شو. هغه وخت له دولتي چاپي امکاناتو پرته نور امکانات نه وو، شخصي چاپ هم ډېر دود نه و، تر دې دمخه په ټول افغانستان کې فکر کوم د چاپ په دومره اوږده بهیر کې، یوازې دوه یا درې عنوانه پښتو کتابونه په شخصي لګښت چاپ شوي وو، نور په شخصي لګښت د چاپ کلتور بېخي دود نه و.

زه چې ددې ټولګې د چاپ په برخه کې له دې موسسو نهیلی شوم، نو د شخصي چاپ مفکورې مې په ذهن کې

غځوني وکړي، هغه وخت د شخصي لګښت پیدا کول هم څه اسانه خبره نه وه، ډېر هلې ځلې مې وکړې، په دې برخه کې هم پاتې راغلم، خو په پای کې مې په خپل ټولګیوال (پښتون بهرامزي) سترګې خوږې شوې. (دا مهال زه د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د پښتو څانګې د درېیم ټولګي محصل وم.) پښتون بهرامزی زما ټولګیوال هم و او زما نږدې ملګری هم، په درس کې په منځنۍ کته ګورۍ کې راته، خو د پښتونولۍ او ملي احساس له مخې په لومړۍ درجه اشخاصو کې و، اقتصاد یې هم ترمنځنۍ کچې لږ لوړ و. دده نیکه بهرام خان د مشروطه غوښتونکو د غورځنګ فعال غړی و، نو ځکه ده خپل تخلص د پلار پر ځای، نیکه ته منسوب کړی و، لنډه دا چې دی پر پښتو ډېر مین ځوان و، تل به یې ماته ویل: ((پښتو ته د فکري او فرهنګي کار سرته رسول ستا کار دی، خو که چېرې خبره د خرپ او ترپ، پیسو او یا هم د زور راغله، نو بیا ته موږ ورته پرېږده...)) کله چې ددې کتاب د چاپ خبره راغله، نو ما ورته وویل، چې فکري کار خو ما ترسره کړ، اوس نو راځه دا بل کار ستاسو دی، هغه وویل: ((راځه دا سې به وکړو چې پر نورو کسانو به وګرځو، که څوک پیدا نه شول، نو بیا به خپل زور ووهو)). ډېره لټه مو وکړه، خو څوک پیدا نه شول. په پای کې دی مجبور شو خپله هغه

پانګه چې له کوره يې هم پته وه، راوباسي او د کتاب د چاپ غم وخوري، کله چې چاپخونې ته لاړو، په هغو پيسو هم چاپ ناشونی و. څو ورځې نور هم د پيسو په لټه کې شو، له خپل يو بل ملګري څخه مې يو مقدار پيسې د احسن پور په توګه واخيستې، نو په دې ډول د کتاب چاپ لګښت پوره شو. بيا مې له ښوونې او روزنې وزارت څخه، (په شخصي لګښت د




کتاب چاپ) امر واخيست، هغوی خپلې چاپخونې ته وليکل چې که چېرې دوی په خپل لګښت کتاب چاپوي، ورته چاپ يې کړئ! د پوهنې چاپخونې رئيس ښاغلی عبدالکبير کاکــــــــــړ مې پېژندګلوی و، د لغمان و، فرهنګي سړی و،

د محاسبې رئیس یې راوغوښت او ورته یې وویل، چې موږ سره مرسته وکړي او ډېره ګټه راباندې ونه کړي، د څو ورځو په بهیر کې مو په حروفچیني ډول د کتاب د چاپ کار خلاص او د یو زر ټوکو په شمېر مو کتاب چاپ کړ. د کتاب پښتۍ ساده، پر لومړي مخ د کتاب عنوان او پر څلورم مخ د ښاغلي پښتون بهرامزي عکس او له هغه څخه شوې مننه چاپ شوې وو.

د کتاب تر چاپ دمخه ما او بهرامزی صیب دا سې تړون کړی و، چې کله کتاب چاپ شو، نو د خرڅلاو له لارې به یې ده ته خپلې او زموږ بل ملګري ته خپلې پیسې بېرته ورکوم او که چېرې یې پیسې زیاتې شوې، په هغو به نور کتابونه چاپوم. کله چې کتاب چاپ شو، زه او پښتون بهرامزی له خوشالۍ نه په کالیو کې نه ځایېدو. د یوې میاشتې په بهیر کې مو په زور او رضا پر لیکوالو او د شعر پر مینوالو دا اثر خرڅ کړ، عاشق الله فریاد او اکبر کرګر موږ سره په دې برخه کې ډېره مرسته وکړه، د کتاب تر خرڅلاو وروسته د پښتون بهرامزي پیسې هم پوره شوې او زموږ د هغه بل ملګري پور هم خلاص شو، خو څرنګه چې ځینې کتابونه له موږ څخه په وړیا ډول تللي وو، نو د بل کتاب چاپ ته څه تېرې پاتې نه شول، خو موږ ته یوه لویه لاره خلاصه شوه او هغه دا چې په شخصي لګښت کتابونه چاپولای او بېرته یې لګښت هم

راکښلای شو، دا یو فرهنګي انقلاب نه و، خو د یو فرهنګي انقلاب د پیلامې لپاره یې مورږ ته د جرئت وزرونه جوړ کړل، بیا مو همدې لړۍ ته دوام ورکړ، هغه وخت اکثرو خلکو زموږ ددې هڅې ملاتړ وکړ، خو ځینو به اعتراض کاوه، چې ولې یې د لګښتو ال عکس چاپ کړی او مننه یې ترې کړې، خو موږ به ورته ویل، دا د هغه حق دی، هغه چې د یو کتاب لپاره دومره لګښت ورکوي، نو له موږ څخه په یوه مننه، څه شی کمېږي؟ دې سره به نور خلک هم تشویق شي، چې همدې لړۍ ته دوام ورکړي. اوس چې له هغه وخته نږدې شل کاله تېرېږي او خپله زما په لاس، تر سلــو عنوانو زیات هغه اثار چاپ شوي، چې لګښت یې زموږ هېوادپالو فرهنګپالــــو افغانانو ورکړی دی. موږ پرې زیات خوشاله شوي یو او دا کار یو فــــرهنګي انقلاب ګڼو. ان د دې کتاب تر چاپ نږدې شل کالــــه وروسته بیا هم دا اثر په شخصــــي لګښت چاپېږي، خو هغه خــــوند او مزه چې ددې کتاب پر لومړي چاپ ما څکلي، تر اوسه یې زما فــــرهنګي مینه تازه ساتلې ده، نو ددې کتاب د بیا چاپ پر وخت لازمه ګڼم، له ټولو هغــــو فرهنګپالو څخه

چــې ددې کتــاب او نــورو اثــارو د چــاپ پــه برخــه کــې مرستندوی شوي، مننه وکړم، پـه تېره بیـا لـه ښاغلي پښـتون بهرامـزي څخـه. ښـاغلی بهرامـزی د تنظیمـو اکۍ د جګـړو پـر مهال د یوه خونړي تنظیم له خوا بندي شو ، خو خدای خبر چې د خدای مخلوق ته د ده د کومې ښېګنې له امله روغ رمټ، لـه دې وژونکو وژغورل شو ، زمـا خـو زړه دا وایـي چې کېـدی شـي ، د ګڼو ښـېګڼو تـر څنګ یې د فرهنګـي خدمت دا یـوه ښـېګڼه هم مخې ته ودرېدلې وي. بهرامزی اوس په ډنمارک کې ښه ژونـد لري، خو څومره چې زه هغه پېژنم د حیران کتاب د چاپ خـاطره به یې اوس هم په ذهن کې همداسې تانده وي.

له دې داستان څخه مې هدف دا و چې د هېـواد فرهنـګ تـه کـار کـول لـه دغسـې سـتونزو ، کړاوونـو ، دردونـو ، خـو ډېـرو خوندونو سره مـل دی. کـه څـوک د زړه لـه تلـه خپلـو هېوادوالـو سره مینه ولري، نو خدای(ج) یې ضرور د بـري مقـام تـه رسـوي. ما خپله فرهنګي مبارزه له همدغو حالاتو راپیـل کـړې، اوس د نورو لویو فرهنګي کارونو ، چې ترسره کول یې زما په وس کې نه دي، خو د بریالیتوب په لټه کې یې یم او د زړه له کومې ورتـه کـار کـوم، لـه خپلـو هېوادوالـو هیلـه لـرم، مــــــورته د دعـا لاسونه پورتـه کـــړي، چې خپل هېواد د پردیو له کلتوري

او فکـري يرغـل څخـه وژغـورو او د نړيوالـو پـه کلتـوري تصويرونو کې، موږ هم د خپل کلتور ځلانده تصوير په خپلو سترګو وګورو.

په همدې هيله
پوهندوی محمد اسمعيل يون
د ۱۳۸۷ل کال د سلواغې ۵مه
کابل- افغانستان

# یادښت

د خوښۍ ځای دی، چې د ښوونې او روزنې مطبعه د خپلو بنسټیزو دندو، یانې د هېواد لوښو او زامنو ته د درسي کتابونو د چاپولو په څوا کې یو ځل بیا د دې بری ترلاسه کړ، چې د یو ځوان او تکړه شاعر محمد عالم حیران، د شعرونو مجموعه چاپ کړي.

محمد عالم حیران په یوې غریبې کورنۍ کې سترګې پرانیستي، خپل خوږ عمر یې خلکو ته د خدمت په لار او د خپلې مورنۍ خوږې ژبې پښتو په پاللو او روزلو کې تېر کړی دی.

د حیران د شعرونو دا مجموعه د ښاغلي محمد اسمعیل یون په زیار او هڅه راټوله او چاپ ته تیاره شوې ده. د حیران شعرونه یو خاص خوند او کیفیت لري او لکه څنګه چې له زړه نه پاڅېدلي په زړه لګي او هغه ته قوت ښښي. د ښوونې او روزنې مطبعه په داسې حال کې، چې ښاغلي یون ته د هغه د کار او زیار په لار کې ستر بریالیتوبونه غواړي، خپله دنده بولي، چې د هېواد د بډای فرهنګ په ژوندي ساتلو کې د هر راز علمي، ادبي او هنري اثارو په چاپولو او خپرولو کې خپله ملي او هېوادنۍ دنده سرته ورسوي.

پہ درنښت
ډیپلوم انجنیر عبدالکبیر کاکړ
د ښوونې او روزنې د مطبعې رئیس

سریزه:

هر سهار چې د چمن کونج او کنار لټوم
زه پــه هـغو ګلـځـېرو کـې مـخ د يار لټوم

ولسي شعر او شاعري د هرې ټولنې د ادبیاتو یوه ځانګړې او غوره برخه جوړوي او د ادبیاتو د نورو برخو تر څنګ پـه ډېر ژور ډول د ټولنې د حالاتو او پېښو انځورنه کوي.

پـه ولسي شاعرۍ کې د ټګۍ برګۍ او تېر ویسـتلو نښـې او نښانې نه لیدل کېږي، له یوه پاک زړه څخـه راوتلې وي او د هر چا د زړونـو تـل تـه ننـوزي. پـه ولسـي شـعر کـې د کـوم واکمـن ستاینه او د هغه د زور تر برچې لاندې د هغـه توصیف نـه لیـدل کېږي او نه دا شاعري د بازار په تله د ورځې پـه نـرخ خرڅېږي، بلکـې ولســي شـعر او شــاعري د ټــولنې تــاریخ دی، د هغــې د ماضي هنداره ده او د راتلونکي لپاره الهام.

او ښه خو لا دا ده چې زموږ د پښتو ژبې ولسـي شـاعري ډېـره غنــي او پراخــه ده او زمــوږ د ټــولنې او د هغــې د روحیــاتو د پېژندنې یوه ځلېدونکې پاڼه ده. ولسـي شـاعري خپلـه پـه ولـس کــې د زېږېـدونکو شــاعرانو زېږنـده ده او د پردیـو لــه هــر ډول اغېزې څخه لرې پاتې ده.

یو لیکوال وایي: ((د خلکو سندرې هغو خلکو ویلي دي چې سواد یې نه درلود. لیکل او لوستل یې په عمومي توګه نه وو زده او دا سواد نه لرل باعث شوې ده، چې عامیانه شاعران د هر ډول بهرني تاثیراتو څخه محفوظ پاتې شي. دوی کومه نمونه، نه درلوده چې د هغه څخه تقلید وکړي د شعري قواعدو کوم اقتدار نه و، چې د هغه څخه پیروي وکړي. نو دوی مجبور وو، چې د خپل شخصي ابتکار څخه کار واخلي او نوی شعر خلق او ایجاد کړي او دې مجبوریت داسې ادب راپیدا کړی دی، چې لوړ شعري ارزښت لري او په واقعي توګه د یوه ولس روح منعکسوي.[1]

یو بل پوه وایي: ((د عوامو هنر همېشه ساده وي، زیات تجمل او سینګار نه قبلوي او د ژوند له حیاتي اړتیاوو سره پیوستون لري.))[2]

د پښتو شاعرۍ زیاته برخه د پښتو په ولسي شاعرۍ پورې تړلې ده. هغه خوند او زور چې زموږ په ولسي شاعرۍ کې لیدل کېږي او د خلکو زړونو ته ښه رسېږي، زموږ په معیاري شاعرۍ کې چې د باسوادو یا د تحصیل لرونکو

[1] پوهاند دوکتور مجروح، وږمه مجله، ۱۳۵۴ل کال، ۴ګڼه، ۲۷مخ.
[2] محمد صدیق روهي فولکور پېژندنه، د علومو اکاډمي، ۱۳۶۵ل کال، ۱۲۸مخ.

شاعرانو زېږنده ده او د هغوی له خوا رامنځته شوې، نه ليدل کېږي. اوس هم په زياتو کورونو کې حتی د ښارونو په زياتو کورونو کې د سيمه ييزو او محلي سندرغاړو کيسټونه اورېدل کېږي او دا ددې ښکارندويي کوي، چې زموږ ولسي شعر زموږ د خلکو پر زړونو ښه لګېږي او له هغه څخه خوند اخلي.

د پښتنو زياتې او ياکه وواېو ټولې سيمې له ولسي شاعرانو څخه ډکې دي، خو په ځانګړي ډول د هېواد ختيزه سيمه د پښتو د ولسي شعر او هم د معياري شعر او ادبياتو د يوې سترې زېږندويزې سيمې حيثيت لري. دلته داسې شاعران زېږېدلي، لوی شوي او ژوند يې له لاسه ورکړی، چې کلونه کلونه به يې د شعرونو انګازې زموږ د خلکو په زړونو کې تاوېږي. د ملنګ جان، محمدنور، شيخ احمد خان، حنان او له داسې نورو نومونو سره زموږ خلک ښه بلد دي او پر زړونو يې ښه لګېږي، خو موږ دلته پر يو بل ولسي شاعر محمد عالم حيران چې ده به هم د هغو ځای نيولی وای خو ژوند ورسره ياري ونه کړه او په ډېره ځوانۍ کې يې ورژاوه او له شعرونو ډک زړه يې ګور ته کښته کړ، خبرې کوو. خو بيا هم ده د ژوند په ډېره تنګه او لنډه موده کې د خلکو په زړونو

کې خپل ځان ته لاره پرانیستله او په خپلو خوږو شعرونو او اواز یې تل تر تله د خلکو په زړونو کې د اوسېدو ځای پیدا کړ. دی د لغمان ولایت د الینګار په ښکلې شاعرانه سیمې، هغه سیمه چې طبیعت یې شاعرانه دی، جوړښت یې شاعرانه دی او خلک یې شعر مزاجه دي، زېږېدلی دی، نو باید حیران ښه شعرونه ووایي او خواږه یې ووایي.

یوه لیکوال، هغه وخت چې حیران ژوندی، و د هغه په باب لیکلي: (( محمد عالم حیران د محمد سالم زوی د لغمان ولایت د الینګار ولسوالۍ په کټه‌ل کې پر ۱۳۳۰ل کال زېږېدلی دی. نوموړی شاعر له ډېرې غریبې کورنۍ څخه دی، کسب یې نجاري دی، سربېره پر دې چې تکړه نجار دی په زړه پورې هنرمند هم دی، ډېر کیسټونه لري. نوموړي شاعر مکتب نه دی لوستی، سواد یې له خپلو همزولو څخه زده کړی دی.

حیران د شعرونو دوه مجموعې لري، چې دده د وینا له مخې یې د شعرونو تعداد (۲۲۰۰) ټوټو ته رسېږي، اکثره شعرونه یې عشقي دي. د ښاغلي حیران ځینې شعرونه د ورځپاڼو له خوا چاپ شوي او ځینې شعرونه یې په راډیو او ټلویزیون کې د هنرمندانو له خوا ویل شوي دي)).[1]

[1] الینګاري شاعران، عزیز تحریک، ناچاپ.

کله چې حیران پنځه کلن و، نو له خپل پلار سره یې په نجارۍ کې مرسته کوله او کله چې یې د خپلو ملګرو او په مسجد کې د کتابو د لوستلو په واسطه سواد زده کړ، نو له شعر او شاعرۍ سره یې هم علاقه پیدا شوه او په لږه موده کې یې پر شعر ویلو پیل وکړ او پر **۱۳۴۵**ل کال یې خپل ځینې شعرونه محلي هنرمندانو ته ورکړل او د هغو له خوا زیات تشویق شو. حیران پر **۱۳۲۱**ل کال د کابل د تلاشۍ په کنډک کې سرتېری شو، څه موده وروسته له هغه کنډک څخه جنایي کورس ته معرفي کړای شو. پر **۱۳۲۲**ل کال له کورس څخه فارغ شو، د همدې کال د میزان په میاشت کې یې د وظیفې پر اجرا کولو پیل وکړ او د همدې کال د جدي میاشتې پر لسمه نېټه د لغمان ولایت د ((ده زیارت)) په کلي کې په یوې مخامخ جګړه کې شهید شو. روح دې ښاد وي.

له محمد عالم حیران څخه دوه زامن او دوه لورګانې پاتې دي. اوس راځو د حیران د شاعرۍ ځرنګوالي او څومره والي ته!

حیران د خپل ټول **۳۲** کلن ژوند په موده کې هر څه چې یې له لاسه کېدل ویې کړل او ښه خو لا داده، چې د ژوند سختیو او کړاوونو د شاعرۍ پر لاره بوته او په کومې بلې لارې یې د تلو تکل ونه کړ. سعدالله جان برق وایي: ((په هر چا چې غم ډېر شي

نو دریو شیانو ته به مخه کوي. یا به لېونی کېږي، یا به شرابو ته پناه وړي او یا به شاعرۍ ته مخه کوي.)) [1]

که موږ د ژوند د سختیو پورتنیو دریو نتیجو ته وګورو، نو ښه به هغه څوک وي، چې شاعرۍ ته مخه کړي او یا شاعري ورته مخه کړي او دوه نورې خو یې انسان د ټولنیز ژوند له عادي بهیر څخه باسي. خو حیران هم ښه په دې دی، چې شاعرۍ ته یې مخه کړې او په دې توګه یې د ژوند له سختیو سره د مبارزې لاره نیولې ده. حیران د خپل ځوان او لنډ عمر په موده کې وکولای شول، په خپلو ځوانو شعرونو سره د ژوند او د خپلې ټولنې مختلف اړخونه راوسپړي او د شعر او نظم په ژبه یې د موسیقۍ څپې هم له شعر سره یوځای کړي، چې وکولای شي د خپل زړه کوکې په لا ښه ډول خلکو ته ورسوي.

[1] لاس او ګرېوان، د عبدالرشید رشید خار د شعرونو جونګ، د سعدالله جان برق سریزه.

هغه په ډېره تنکۍ ځوانۍ کې پر شعر ليکلو پيل کړی و، کله چې د هغه شعرونه محلي سندرغاړو د موسيقۍ په څپو کې ولوستل، نو دده پېژندګلوي هم له هغو سره زياته شوه، ترڅو چې دی يې هم له خپلو شعرونو سره يوځای د موسيقۍ زړه راکښونکي سمندر ته کش کړ او دې کار خو د حيران شاعري او شهرت ته دومره ځواک ورکړ، چې نن يې موږ هم دې ته مجبور کړو، چې قلم راواخلو او د هغه د ژوند او سندرو په باب تر وسه وسه څه وليکو. حيران د خپل ژوند تر وروستي بريده د څومره والي او څرنګوالي له پلوه د کتنې وړ شعرونه ليکلي او په دې موده کې يې په خپل اواز په سلګونو کيسټونه ثبت کړي دي. خپل شعرونه يې هم د موسيقۍ په څپو کې ويلي او د نورو هم.

د حيران ټول شعرونه د موسيقۍ په څپو برابر دي، چې دا کار زموږ د ولسي شعر يوه غوره ځانګړتيا ده او برابر خو بايد ځکه وي چې هغه په خپله يو مين هنرمند و او پر موسيقۍ پوره بلد و. اوس په لغمان ولايت کې داسې کور کوم يو که پيدا شي چې دی ټيپ غږوي او د حيران کيسټ دې ورسره نه وي، ما هم د هغه زيات شعرونه د هغه په خپل اواز او هم د نورو سندرغاړو له خولې له کيسټونو څخه د کاغذ پر مخ کښلي دي.

د حيران د شعرونو د زور څپې نه يوازې د يوې محدودې سيمې له پولو څخه رابهر شوې، بلکې زموږ د يوه معياري

شعر په توګه يې په ټول هېواد کې انګازې وکړې او ډېر ځله به مو دا شعر د راډيو افغانستان له خپو څخه د مشهورو سندرغاړو له خولې اورېدلی وي، چې وايي:

هر سهار چې د چمن کونج او کنار لټوم
زه په هغه ګلخېرو کې مخ د يار لټوم

حيران سره له دې چې ښوونځی نه و لوستی او تحصيل يې نه و کړی او نه يې د شعر او شاعرۍ په باب کومه علمي څېړنه او پلټنه کړې وه، خو څرنګه چې د شاعرۍ زياته زېږندوينه پر فطرت ولاړه ده، ده هم له خپل فطري لياقت او ذکاوت څخه په کار اخيستلو سره داسې شعرونه وزېږول، چې مړينه به يې ډېر کلونه په بر کې ونيسي او د ځينو مړينه خو به يې تر هغه چې زموږ ولس ژوندی وي، ناشونی کار وي.

حيران د شعر په بېلابېلو فورمونو کې شعرونه کښلي، خو ده خپل زيات شعرونه همدغه د پښتو د ولسي شعر په چوکاټونو، يو شمېر يې د غزل او يو شمېر نور يې په پښتو کې باب له عربي ژبې څخه راغليو چوکاټونو کې ليکلي دي. شعري ژبه يې نرمه، ساده او روانه ده او له تجمل، پېچلتيا او تېروستنې څخه خالي ده. داسې ښکاري چې خپل ټول شعرونه يې له پاک زړه څخه راکښلي او هېڅ ډول کينې ته يې په کې ځای نه دی ورکړی، چې دا هم زموږ د ولسي شعر يوه بله غوره ځانګړنه ده.

څرنګه چې حیران پر موسیقۍ پوره بلد و، نو شعرونه یې د موسیقۍ له څپو سره ډېر ښه ویل کېږي او په ځینو وختونو کې خو په سېلابي سیستم پسې هم دومره نه دی ګرځېدلی مقصد چې له موسیقۍ سره برابر راغلی، په همغه یې بسنه کړې ده، ځینې شعرونه یې که د کاغذ پر مخ همداسې وواېو نو شاید له سکتې سره به مخامخ شو، خو که د موسیقۍ له څپو سره یې یو ځای کړو، ډېر خوند به ورڅخه واخلو، وګورئ دا شعر له موسیقۍ سره څومره ښه راغلی دی:

سترګو دې بیا ناغې پیدا کړلې غمجنې دې
چا نه ګیله منې دې د زړګي سره
خاطر دې بیا ولې ملال دی د زړه سره زما
سترګې دې بیا ناغې شوې ناز پروره زما
چاته له درده غابن چیچې لرې دلبره زما
په مخې دې مړې اوښکې خورې سلګۍ غمجنې دې
تر پایه...

او یا هم دا شعر:

د زړګي پټ زخمونه وښیمه چاته
سل کړم د مینې سودا

د محتوا له مخې د حیران په شعرونو کې ملي، وطني او د ځانګړي انساني مینې روحیه زیاته لیدل کېږي، خو په دې کې بیا انساني مینې ته ځانګړې ځای ورکړ شوی دی.
د حیران د شعرونو یوه بله غوره ځانګړنه په دې کې ده، چې دی سره له دې چې په یوې داسې شاعرانه سیمې کې زېږېدلی، چې شاوخوا یې ټوله ولسي شاعرانو نیولې وه، خو دی هېڅکله د هغو تر اغېزې لاندې نه دی راغلی. کله چې په کیسټ کې د هغه شعر د کوم هنرمند او یا په خپله د هغه له خوا ویل کېږي، سړی له ورایه پوهېږي چې دا د حیران شعر دی. حتی ډېر خلک چې سواد هم نه لري، له نورو شاعرانو څخه یې شعرونه بېلولی شي او دا ځکه چې دده په شعرونو کې یو ځانګړی درد پروت دی. که د شعر پېژندنې او اروا پوهنې له مخې د حیران پر شعرونو سوچ وکړو، نو دی له ژوند څخه ناراضه او نا امیده ښکاري. زما په فکر او ګومان دده دا نهیلي له دوو وجو کېدی شي ده ته پېښه شوې وي:
په لومړي ګام کې د ځانګړي انساني مینې له کبله چې شاید چا سره یې مینه درلودلــــــه او بیا خپلې هیلې ته نه دی رسېدلی. او په دویم ګام کې د اقتصادي ستونـزو له کبله،

ځکه چې دی له کوچنیوبه له سترو اقتصادي ستونزو سره مخامخ و.

خو بیا هم په شعر کې یې دومره زیاته نا امیدي نه لیدل کېږي چې سړی حکم وکړي، چې دی په مطلق ډول په نهیلۍ کې غرق دی، خو له اواز څخه یې داسې برېښي چې د ژوند شپې پرې چندان ښې نه دي تېرې شوي. حیران د خپل عمر په ډېره لنډه موده کې په دې بریالی شو، چې ډېر شعرونه یې زموږ له معیاري شعر سره سیالي وکړای شي او که د موسیقۍ له څپو سره یې برابرښت په پام کې ونیسو، زموږ تر ډېرو معیاري شعرونو ښه برېښي، وګورئ دا غزله:

زه چې ژړېږم اشنا هم ژاړي
ټوله دنیا زما په غم ژاړي
زما د ژوند صحنه قلم لیکلې
که حیران نه ژاړي قلم ژاړي

او یا هم دا غزله:

ما ته په کعبه د چا قسم مه راکوه
مینه مې حرم دی بل حرم مه راکوه

دغه راز د حیران په شعرونو کې د ځانګړې ژمنې روحیه هم ښه ځلېږي، هغه له نن څخه لږ تر لږه پنځه لس کاله وړاندې په خپل شعر کې وچو شونډو، په اوښکو لندو سترګو، زګېرویو

او سلګیو ته ځای ورکړی دی، خو زموږ ځینو ځوانو شاعرانو اوس قلم تېره کړی دی او پر دې شیانو خپل وخت تېروي.

ملګريــــه ســـتايه خـــط و خـــال ســـتايه
ښــــکلا د ښــــکلو د جمــــال ســــتايه
په اوښکو سپينې سترګې څه کړې پرېږده
د تـــورو ســـترګو نــاز و خيـــال ســـتايه

تر پايه...

همدا ډول حیران د ټولنې د هغه وخت د روان ژوند په باب او په هغې کې د اشخاصو د چلند په باب هم په ښکلې بڼه انتقادي نظمونه لیکلي او د خلکو غوږونو ته یې رسولي او پر خلکو هم ډېر ښه لګېدلي، دا ځکه چې خلکو دا کارونه په خپلو سترګو لیدل او ورسره پوره بلد وو. سره له دې چې دده دا ډول لیکنې به پر هنري ارزښتونو ولاړې نه وي، یانې شعري ځانګړنې به په کې په پوره ډول نه وي مراعات شوې، یانې نظمونه دي، خو خلکو او ولس ته یې تر ډېرو شعرونو زیات ارزښت درلود، دا ډول نظمونه د هر شاعر په شعرونو کې موجود وي، هېڅ داسې شاعر نه شته چې د هغه ټوله شاعري دې پر هنري معیارونو ولاړه وي.

خو د حیران دا نظمونه پر خلکو ښه لګېدل، وګورئ دا نظم یې:

درد مې په زړه دی ته ګولۍ راکې د سر ماما
مرض ته ګوره بیا نسخه راکړه ډاکټر ماما

او یا هم دا نظم:

د الینګار موټر کې مه ځئ غورازه ده
تړلې جنازه ده ځان ساتئ ګوره خلکو

یوه بله خبره چې د یادولو وړ ده، هغه داده چې هنرمند ته زموږ په ټولنه کې تل ترتله په ټیټه سترګه کتل شوي. حیران هم دې خبرې ته متوجه دی او وایي:

د جاهلانو خندا او رمه ځورېږم
خلک مې ولې کچه بولي
هنر زما پیشه ده

دغه راز یو بل ټکی چې د حیران په شعرونو کې د یادولو وړ دی هغه دادی، چې په شعرونو کې یې ځینې کلمې له

محاوروي شکل سره سمې راوړې دي، یانې څنګه چې په ورځني ژوند کې د خلکو له خوا کارول کېږي.
لکه:

درد مې په زړه دی ته ګولی ((راکی)) د سر ماما

دلته د (راکوې) فعل د (راکی) په بڼه راغلی دی.

په هر حال حیران شاعر و او ښه شاعر و او شعرونه به یې تر ډېره وخته زموږ د ولس او خلکو په زړونو کې پاتې وي. په پای کې له درنې خور ځوانې شاعرې پلوشې ساپی، ګران ورور ځوان شاعر لعل پاچا او ګران شاعر عاشق الله فریاد څخه د زړه له کومې مننه کوم، چې له ما سره یې د مرحوم حیران د شعرونو په راټولولو کې مرسته وکړه او په همدې هیله چې خدای ښنلي حیران ته خدای اته واړه جنتونه ورکړي او روح یې ښاد وي، خپلو خبرو ته د پای ټکی ږدم.

په درنښت
په ټوله پښتنه مینه
اسمعیل یون
۱۳۶۹ل کال



هر سهر چې د چمن کونج و کنار لټوم
زه په هغه ګل شپرو کې مخ د یار لټوم

ما د مینې فیصلو کې یو اشنا غوره کړ
محبت مې د ګلرخو په دنیا غوره کړ
اوس د مینې په ساحو کې وفادار لټوم

ژوند مې مینه مرګ مې مینه سودا مینه ده
ما د زړه په سر ښکل کړی رښتیا مینه ده
اوس په مینه د خوږې مینې دلدار لټوم

ستا د زلفو زولنو کې زړګی ګیر دی زما
نه مې خوب شته نه خندا شته مدام ویر دی زما
ستا د تورو زلفو څوکې تار په تار لټوم

رنګ مې تور دی وچې شونډې سودايي ګرځم شوم
کور او کلی رانه پاتې صحرايي ګرځم شوم
زه حیران د تورو غرو څوکې ناچار لټوم.



پاکــه ربــه نــن د مینــې اشــنا نــه شــته
ځمکــه نــه شــته اســمان نــه شــته دنیــا نــه شــته

پــرون جــوړې منظــرې وې پــه ســرو ګلــو
نــن خــورې ورې کېــږدی پــه بیــدیا نــه شــته

پــه ســرو ګلــو بــه غوغــا وه د بلبلــو
هغــه ســوز و ســاز بلبلــې بــورا نــه شــته

کــانې بــوتې راتــه لپــې لپــې ژاړي
وایــې ښــکلې نــازولې لــیلا نــه شــته

بېهــوده د وفــا تمــه کــړې حیرانــه
ګلرخــانو کــې یــو تکــی وفــا نــه شــته.



د زړګــــي پـــټ زخمونـــه وښـــيمه چاتـــه
سل کړم د مينې سودا
خاونــده هېڅـوک مــې غــوږ نــه نيســي ژړا تــه
ســل کــړم د مينـــې ســـودا
د بـېلتانــه پـه تــور مـاتم کې
ځان رانه ورک دی په عالم کې
څــه وکــړم لاس مـــې نــه رســېږي بلــې خوا تــه
ســل کــړم د مينـــې ســـودا
نور به په څه زړګی خوشال کړم
را چې پـه خپله ځان حلال کړم
څــو بـــه ســـړې ګيلـــي کـــوم اشـــنا تـــه

سـل کـړم د مینـې سـودا
په تندي تل خورم ګوزارونه
وهم د سرو وینو غـړپـونـه
عالمـه څـه بـه مـې پېښېـږي انتهـا تـه
سـل کـړم د مینـې سـودا
وینې دې ډنډ ګرځي ګوګل کې
لـه نـاروا بـه څـه حاصـل کـې
حیرانـه څـو بـه لاس پـه نـام یـې بېوفـا تـه
سـل کـړم د مینـې سـودا.



د ژوندون په سرمایو مې تالان راغی
په ګلشن زما د وصل خزان راغی

یو پرهار نه دی چې غم د تشخیص وخورم
مرګنی د یار له لوري پیکان راغی

پرورش مې د خاطر په وینو ورکه
اوس خزان مې په هغه ګلستان راغی

د زړه وینې مې شراب ورته نیولي
ښه چې بیا مې نازولی جانان راغی

که په سترګو د وفا ورته نظر کړې
په امید د وصال سوی حیران راغی.



یـــاره داســـــي خـــوار زار شـــــي لکـــه زه
پـــــه غمونـــــو ګرفتــــار شـــــي لکـــــه زه

خـــدای دې اور د عاشـــقۍ پـــه تنـــدي بـــل کـــړه
چـــې خبـــر د عشـــق پـــه کـــار شـــې لکـــه زه

چـــې دا هـــومره اجتنـــاب کـــړې لـــه عاشـــقو
هســـې ګيـــر پـــه ګـــل رخســـار شـــې لکـــه زه

د غمجنـــو غـــم هـــوس مـــه بولـــه پـــوه شـــه
لـــــه غمجنـــــو خبـــــر دار شـــــي لکـــــه زه

زه حيـــران بـــه نـــو نـــور څـــه وايـــم دلبـــره
د غمونـــــو ســــــزاوار شـــــي لکـــــه زه.



ستا د غم غشی مدام د زړه په سر خورم
ناست په ویر یم مدام وینې د ځیګر خورم

دا خو ستا د ښکلا حسن ګدایي ده
چا هلالو تندکونه در په در خورم

که د یار له لاسه زهر او زقوم وي
په مزه یې لکه شات او یا شکر خورم

زه حیران به عاقبت ځان پرې قربان کړم
په ډیوه د مخ څرخونه برابر خورم.



طبیبـــه نـــه روغیږمـــه مشـــکل مـــې شـــو عـــلاج
لـــه تشـــې تبـــې نـــه یمـــه د ســـل مـــې شـــو عـــلاج

بـې ځایـه خـواري مـه کـړه زه پـه خپـل مـرض پـوهېږم
قسـم زمـا پـه رب دی نـور پـه هـېڅ شـي نـه روغېـږم
د یـار دیـدن عـلاج دی نـه چـې بـل مـې شـو عـلاج

دوه سترګې راښکاره کړه نور مې هېڅ پـه ارمان نـه شته
درمـان زمـا د رنـځ دی اشـنا ، بـل څـه درمـان نـه شـته
بـس دا تسـکین د رنـځ دی تـل تـر تـل مـې شـو عـلاج

د نـاز پـه کرشـمو کـې دې یـو بـل عجیـب اثـر دی
ارمــان د ناچــار عمــر او تســل مــې د ځیګــر دی
خـوږو سـترګو سـتونه مو سـېدل مـې شـو عـلاج

لا سـونه را تـر غـاړه مو سـکه خولـه پـه خنـدا ډکـه
ابتــره ســاه نیــولې وار خطــا ده ځکــه پکــه
حیرانـه پـه رښـتیا چې اوس بېلکـل مـې شـو عـلاج.



کلـه چـې د مینـــې ډ کـه ښــکلې دنیــا ورانــه شــوه
بیــانو د عاشـقو زنـده ګـي پــه رښــتیا ګرانـه شـوه

زړه په یار مین شو سترګې ژاړي ګرېوان څیري شو
ټولـه رسـوایي مـې لـه ټـوټې ټـوټې ګرېوانـه شـوه

زه ملامـــت نـــه یـــم مـــا د مینـــې قـــانون ومنـــه
ښـه ده چـې خطـا او سـهوه ټولـه لـه اشـنا نـه شـوه

زه بــه د غمجنــې زنــده ګــۍ شــکایت چاتــه کــړم
واړه بـې رحمـي مـې لـه دې بـې رحمـه جانانـه شـوه

حــال زمــا د ســوي، لـه دې سـوو اوښـکو وپوښـته
دغـــه افســـانه د تمـــام عمـــر لـــه حیرانـــه شـــوه.



ملګريه ستايه خط و خال ستايه
ښکلا د ښکلو د جمال ستايه

په اوښکي سپيني سترګي څه کړې پرېږده
د تورو سترګو ناز و خيال ستايه
زما پترې د وچو شونډو خوښ دي
ته دې په سرو شونډو زلال ستايه
زه به زګېروي تو ته سلګۍ وهمه
ته کوم بې غمه زړه خوشال ستايه
زه تو متي د زولنو لايق يم
ته نن د ښکلو زلفو جال ستايه

زه به تقدير پسې بيديا لټوم
د ناز حرم کې ته وصال ستايه.



سپینې سپوږمۍ ځار دې شم ما سره ناکام کوه
حال مې دزړګي وایه یار ته مې سلام کوه

ناست یم یکتنها په غم، سترګې مې په اوښکو نم
ډک مې له ګیلو سره دا رنګین پیغام کوه

زړه شو په لمسون د چا، لاړه په لټون د چا
تا ته نیمه خوا درځي ګرانې لرې پرې پام کوه

لاس په نام دقت سره، ورشه محبت سره
سوال مې د وصال سره ښه په احترام کوه

وېسه د حیران پیغام، دا د مینې ډک سلام
نور نو د ښکلا صفت ګوره لاس په نام کوه.



د نازولو په یاد خیال و سودا شومه زه
ځیرې ګرېوان ګرځمه رسوا رسوا شومه زه

زما د زړه پیمانه، له غمو ډکه شوله
خیال و سودا مې په، سر نن بې درکه شوله
د هرچا ګوته راته، د تومت لکه شوله
لاړم د غرو څوکو ته سر په صحرا شومه زه

ما د زړګي شیشه کې، اشنا لیدلی دی
د خوږې مینې په راز، مې پېژندلی دی
د خیله لاسه مې اور، ځانته لړلی دی
خیر که پتنګ په شانې دود په ښکلا شومه زه

سترګو کې بیا د اوښکو ، جوړې جرګې غونډې شوې
ستا د دیدن فیصلې ، په کې خوږې غونډې شوې
اشنا د زړه ستنې مې ، درته کږې غونډې شوې
درځم د مرګ په لاره خیر که تالا شومه زه

ستا په یارۍ کې اشنا ، رابانډې دا راغی
د کور و کلي پوزخند ، د لېونتیا راغی
وایي حیران لېوني ، هغه ده بیا راغی
خبر له ځانه نه وم انګشتنما شومه زه.



غـــم دې پـــه مـــا زور و پـــټ پـــټ مـــې ژړل
زه وم د غـــم کـــور و پـــټ پـــټ مـــې ژړل

جـــوړه قتـــل ګـــاه وه مینـــې ژړېـــدې
هـــر طـــرف غوغـــا وه ســـرې لمبـــې ختـــې
بـــل د هجـــران اور و زړونـــه داغېـــدل

خولـــه پـــه خنـــدا ډکـــه وه ښـــکلې بـــې پـــروا
ناســـته څکـــه پکـــه وه ســـپین مـــخ يـــې زېبـــا
تـــور زلفـــان يـــې خـــور و ، ورو ورو رپېـــدل

خيـــال د اشـــنا يـــاد شـــو لاړم لاس پـــه نـــام
زړه پـــه ديـــدن ښـــاد شـــو ومـــې کـــه ســـلام
بخـــت د حيـــران تـــور و يـــار کلـــه کتـــل.



مــا چــې ولیــده د یــار ښــکلی بشــر
لکــه خــاص چــې وي پــه مــا بانــدې اختــر

تــورې زلفــې یــې پــه نــاز شــانه کــولې
لــور تــر لــوره کښــته پورتــه و معطــر

کرشــمو کــې یــې یــو بــل عجــب اثــر و
زمــا خــوار زړګــی یــې خــوار کــړ یــو نظــر

بې پـروا مـې خوا نـه تېره شوه موسکۍ شوه
اور یــې بــل کــړ د حیــران د زړه پــه ســر.



څــو بــه ارمانونــه د زړه تنــګ ســاتم
نــوره بــه دې لار لکــه ملنــګ ســاتم

تـا چـې پـه سرو وینـو سترګې سرې کړلـې
زه بـه لیمـې سـرې پـه وینـو رنـګ سـاتم

ســترګو مــې د ســترګو لار څــارلې ده
غــوږ کــې د اشــنا د پــاولو شــرنګ ســاتم

درد د رنــدو ســترګو لــه دوا شــوله
ځکــه تــورې خــاورې د پتنــګ ســاتم

زه حیــران بــه اوس زړګــی تســل کړمــه
دا ګیلــې بــه یــار تــه پــه پالنــګ ســاتم.



پــه ســترګو کــې د مینــې پــټ اســرار مــزه لــري
نــازو نــه کرشــمې د خپــل دلــدار مــزه لــري
بــــورا دی کــه بـلبل
صــفت کـــوي د ګــل
مثــال نـــه لـــري بـل
خــــوږې خـــوږې خبـــرې د ربـــار مـــزه لـــري
خوبان که جنګ وقار کړي
د شنو لښتو ګـوزار کـړي
عــاشق پــرې افـتخار کړي
د ښـــکلو اخ و ډب کـــې دنـــدو کـــار مـــزه لـــري

وعــده چــې د وصــال وي

د مینې پُرس و پال وي
غمونه ټول پایمال وي
عالمه هغه شپه د انتظار مزه لري
د مینې داسې کار وي
هر څوک چې ګرفتار وي
حیرانه خوار و زار وي
ټول ژوند د عاشقانو ناقرار مزه لري.



د بـــدو بـــد د ښـــو بـــه ښـــه يـــاد ېږي
وايـــه اشـــنا د تـــا بـــه څـــه يـــاد ېږي

هـر څـه بـه تېـر شـي مګـر هېـر بـه نـه شـي
د خـــوږې ژبـــې بـــه خـــواږه يـــاد ېږي

هـــر څـــه کـــوې خـــو نـــاروا مـــه کـــوه
داسـې خـو نـه چـې دا بـه نـه يـاد ېږي

ترخـه ترخـه وې تـريخ تـاريخ جـوړوې
د نـــن ترخـــه ســـبا ترخـــه يـــاد ېږي

سـترګې نـږدې کـړه د حيـران زړګـي تـه
سـتا خـوږې سـترګې يـې د زړه يـاد ېږي.



لېــــونۍ مینـــــې دې هســــې لېــــونی کـــړم
چـــې همـــه واړه عـــالم کـــې خنـــدنی کـــړم

مســـتې ســترګې دې د ســرو لبـانو ســت کـړي
بـې صـبري دې سـپینې خـولې تـه هـولنی کـړم

چـې د مـخ ډیـوې دې بلـې پـه تـور تـم شـي
هغـــه دم بـــه ځـــان و جســـم ســـپېلنی کـــړم

تېـر خـو هېـر دي پـه حیـران د سـبا پرېـږده
کـــه یـــو ځلـــې دې رایـــاد لا پرونـــی کـــړم.



زما ژوند د یار له غم سره مزه که
لکه گل د اوبو نم سره مزه که

د زیبا حسن کتو لایق دې نه یم
پیغمبر لوح و قلم سره مزه که

پاکه مینه د حیران پاکه اشنا ده
ځکه مینه مې صنم سره مزه که.



شـیرینه یـاره نـو پـه خولـه بـه څـو ګیلـې کومـه
پرېـږده چـې مینـه کـې سـلګۍ وړې وړې کومـه

یو خوا دې غم د تورو سترګو کړم زخمي په ځیګر
بـل دې هجـران پـه زړه را ومنـډه د ظلـم خنجـر
خلاصـه مینـې دې پـه غـم کـې کړمـه شـام و سـهر
درتـه ګیلـې بـه نـو د کـومې قبیلـې کومـه

زړه مـې مجنـون شـو رانـه غـواړي د لـیلا سـترګې
لکـه ماشـوم یـې کړلـې سـرې نـو پـه ژړا سـترګې
نـه شـته نیازبینـه کـه ړنـدې شـوې د دنیـا سـترګې
خاونـده چـا نـه بـه تپـوس اوس د لیلـې کومـه

سـوی حیـران یـم سـوی آه سـوی فریـاد کومـه
ژړا لـه غمـه سـتا د دوه سـترګو پـه یـاد کومـه
وړې سـلګۍ بـه د مجنـون او دفرهـاد کومـه
دا مـې پـه برخـه دی سـلګۍ وړې وړې کومـه



زړګیـــه تـــا تـــه لـــیلا بیـــا یـــاده شـــوه
ماتـــه جفـــا د بـــې وفـــا یـــاده شـــوه

غـــوټې پـــه موســـکه خولـــه خنـــدا کولـــه
بلبلـــه ســـتا مـــې واویـــلا یـــاده شـــوه

شـــبنم لـــه ګلـــه بېلېـــده ژړل یـــې
ځکـــه مـــې سمدســـتي ژړا یـــاده شـــوه

حیرانـــه حـــال مـــې د پتنـــګ ولیـــده
ماتـــه د مینـــې نـــاروا یـــاده شـــوه.



نیمه شپه وه د خیالونو ولولې راغلې
د غمونو ډلې ډلې قافلې راغلې

نیمه شپه وه چې د هجر لمبه بله شوه
دا د غم لمبه مې تاوه له ګوګله شوه
زړه زخمي شو شنې لوخړې مې له خولې راغلې

سترګې پټې خیال کې ډوب د خپل اشنا شومه
لاس مې پاس په تندي کېښود په ژړا شومه
له هیبته مې په مخ سرې خولې راغلې

تنها ناست یمه فریاد د یار په یاد کوم
سوی سوی اسویلی سوی فریاد کوم
هري خوا نه د هجران د غم لمبې راغلې

نور څه نه و توره شپه وه یو حیران غریب
یک تنها په غم کې ډوب کم بخت پریشان غریب
ځکه خولې ته مې نیمګړې څو ګیلې راغلې.



پــه زړه مــې د ژونــدون هغــه نازونــه ټــول ارمــان دي
د تـــورو تـــورو ســـترګو
ارمـــان مـــې هــر زمـان دی ، د تـــورو تـــورو ستـــرګو

ســـوری ســـوری ځيګـــر دی، د مينـــې انتظـــار کـــې
پـــه زړه مـــې جـــوړ محشـــر دی، د مينـــې انتظـــار کـــې
يـــو مينـــه زمانـــه ده اشـــنا ډېـــر دې عاشـــقان دي
د تـــورو تـــورو ســـترګو
څـــوک ســـر وهـــي ژړېـــږي، اختـــه پـــه اند ېښـــنو
څـــوک زړه مښـــي ځـــوربږي اختـــه پـــه اند ېښـــنو
لــه اوښــکو وينــو ډک يــې انتظــار دوا ړه چشــمان دي
د تـــورو تـــورو ســـترګو
نــن تېــره پــه ســبا شــوه، تــر څــو بــه لا حيــران يــې
ســبا د غــم ســودا شــوه، تــر څــو بــه لا حيــران يــې
رنــګ ژېــړ پــه يارانــه کــې وچــې شــونډې د حيــران دي
د تـــورو تـــورو ســـترګو.



هسې غم کړمه د ښکلو بې اختیار
په رڼو سترګو مې ورکه کړله لار

نه پوهېږم چې دا څه راباندې شوي
چې نه یار شم پېژندلی نه اغیار

سرې لمبې شوې رانه تاوې په کې سوځم
راته اور شو نو ښایسته ښکلی ګلزار

که د ټول جهان خوبان ټول وفادار وي
په قسمت د خوار حیران دی جفا کار.



ودې ســـوم جانانـــه ســـترګو کـــې اثـــر لـــرې
زړه مـــې شـــو قلـــم قلـــم څـــه خيـــالي بشـــر لـــرې

راشـــه ســـاه مـــې خېـــږي روح مـــې تاتـــه انتظـــار دی
ای د زړګـــي ســـره نـــور پـــه دې کـــې بـــې اختيـــار دی
مرمـــه بـــې لـــه تانـــه چـــا بانـــدې نظـــر لـــرې

رنځ زما مشکل شو ساه مې خېږي درد مې زور دی
ای د رنـــځ طبيبـــه ! رارســـېږه حـــال مـــې نـــور دی
ای د درد درمانـــه راشـــه کـــه خبـــر لـــرې

مينـــه دمـــين وي خـــو پالنـــه وي دنيـــا کـــې
بيـــا بـــه پـــس لـــه مرګـــه وفـــا څـــه کـــوم عقبـــا کـــې

هلته به شي ګرانه خيال که د محشر لري

زه دا ستا حيران يم څه مې کړې رضا دې خپله
سرو مال مې ستا عشق کې بايللى له ازله
ګرانه مهربانه ته اختيار په سر لري.



رويباره يار ته وايه زما سوال منې که نه؟
د مينې په دنيا کې مې وصال منې که نه؟

دوه سترګې دې کړه پورته زه خيال ستا د ليدو کړم
رښتيا وايه محبوبې دغه خيال منې که نه؟

د ګل قدر بلبل کړي د جمال به عاشقان
تعظيم د عاشقانو د جمال منې که نه؟

يو ځلې دې خوله راکړه په ډېره خوږه مينه
د مينې ارزوګانې هر مهال منې که نه؟

حيران د ارزو ګله لړ په بد حال مې خبر شه
نيمګړې التجا مې د بد حال منې که نه؟.



څوک راته سلګی. که څوک مې ځای پرځای وژلي دي
ما چې په ملالو سترګو هرې خوا کتلي دي

زه چې سترګې تورې شونډې سرې اوربل شانه کړمه
تورې زلفې نورې په سپین مخ دانه دانه کړمه
ښايي چې تمام عالم به واړه دېوانه کړمه

سترګې به رندې وي په ليدو چې مبتلا نه شي
هغه زړه دې وچوي چې په يو نظر تالا نه شي
وينې به يې سپينې په هر رګ کې په جوش رانه شي

زړونه مې د مینې په سیخ اړخ په اړخ داغلي دي

ډېر زما له غمه حال زبون ځیرې ګرېوان ژاړي
هر خواته چې ګورم لېوني خواره پرېشان ژاړي
بل مې د خولګۍ په تمه تل سوی حیران ژاړي
ډېر راته راغلي بېنوا راځني تللي دي.



رانه هېر کړو ډېر یادونه دا ستا یاد
چې رایاد شي بس زړګی شي په فریاد

افرین دې په دا هسې یارانه شي
زه دې غم کړم صبح و شام و ته عناد

ستا په مینه چې زه هغومره صادق یم
په جهان به نه مجنون و نه فرهاد

پس له مرګه که ښادي راشي لحد کې
څه فایده ده چې په ژوند نه شومه ښاد

نه د رب په رضا لاړه نه روغېږي
په حیران بېچاره وشو څه فساد.



پــه ښــکلو ارمــانونو بــه دا ســوی زړګــی ســوړ کــړم
وطنــه ! تــا بــه جــوړ کــړم وطنــه تــا بــه جــوړ کــړم

زمــا ښايســته وطنــه ولا ښــه بــه دې ســينګار کــړم
دا تــورې ســپېرې دښــتې بــه دې ښــې ګــل و ګلــزار کــړم
ښايســته ښــکلي زلميــان بــه دې راپورتــه پــه تلــوار کــړم
دا وږي يتيمــان بــه دې هــر يــو پــه ګېــډه مــوړ کــړم

ړانــده، کانــه بچــي بــه دې بينــا پــه زېربنــا کــړم
بيــرغ بــه دې راپورتــه پــه چــک چکــو پــه هــه هــا کــړم
زمــوږ ملــي نــاموس يــې ټــول بــه تــا ځنــې فــدا کــړم
قربــان بــه دې خــدمت کــې نــر او ښــځه ځــوان او زوړ کــړم

د پـــــوهې لمــــر ختلـــــى معلومـــــداره ښــــکاره لاړ ده
تيـــارو د نـــاپوهۍ نـــه يـــو وتلـــي اوس ســـهار ده
منـــزل و هـــو روان يـــو خپـــل هـــدف تـــه مـــو تلـــوار ده
قســـم دى چـــې بـــد خوا بـــه دې پـــه ډېـــر ارمـــان کـــې ســـوړ کـړم

ستـا نــاوې بـه سـينګار شـي لـور تـر لـور بـه خوشـالي شـي
حيرانـــه بيـــا بـــه هلتـــه ټـــول جهـــان ســـره ســـيالي شـــي
ازبـــک و هـــزاره افغـــان بـــه کلکـــه وروروليـــي شـــي
هـــر خـــوا بـــه کـــور پـــه کـــور درځنـــې ورک ملـــي اروړ کـــړم



تـر څـو پـه خـوب ویـده دي د وطـن ښایسـته زلمیـان
راپورتـه شـئ بیـدار شـئ لـږ څـه وپېژنـئ ځـان

وطـن زمـوږه کـور دی پـه خپـل کـور کـې نـا محـرم یـو
چـې نـوم د وطـن واخلـو نـو پـه دې ولـې مجـرم یـو
څـه وجـه ده ځوانـانو سـپېږ خـور د هـر ظـالم یـو
بېګـاه سـبا پـه سـر د ظالمـانو خـورو سـوکان

نه مو ښې جامې په تن کړې نه په نس باندې ماړه شو
د یـو څپـک جـواري پـه ارمـانونو کـې زاړه شـو

نه هېڅکله د خان صاحب د قرض ځنې ساړه شو
تر څو به دوی خانان وي موږه وړي مزدوران

جهان کې کونج په کونج ورک شوی نوم د استعمار
اختر دی مساوات دی هر یو بوخت دی په خپل کار
تبعیض له منځه تللی د مزدور او د بادار
تراوسه زموږ غوښې خوري ناترسه باداران

په دېره شتمنۍ کې موږ ولې خوار و زار یو
دا ځکه چې حق غواړو بس کافر شو ګنهکار یو
ملا صاحب کړو امر دوزخیان شو معلومدار یو
حیرانه وایه موږه به شو کله جنتیان.



د جاهلانو خندا او رمه ځوریږم
خلک مې ولې کچه بولي
هنر زما پیشه دی

عقل، شعور لرم انسان یم
ځواني طاقت لرمه ځوان یم
د قام د هیلو ترجمان یم
د ګران ولس په خدمتونو نه شرمیږم
هنر زما پیشه دی

مـــین پـــه خپـــل ملـــي کلچـــر یـــم
پـــه اهلیـــت کـــې ښـــه خبـــر یـــم
مســـخره نـــه یـــم بـــا هنـــر یـــم
خیر که خلک خاندي زه خو ډېر پـه دې نـازېږم
هنـر زمـا پیشـه دی

بشـــر خـــو ټـــول مغـــه بشـــر دی
یـــو اراده یـــو یـــې مصـــدر دی
کـــه خـــوار غریـــب کـــه معتبـــر دی
پـه کـور او کلـي کـې زه ولـې بـد یـاد ېږم
هنـر زمـا پیشـه دی.



ماتــــه پـــه کعبـــه د چـــا قســـــم مـــــه راکـــــوه
مینــــه مـــــې حـــــرم دی بـــــل حـــــرم مـــــه راکـــــوه

مینــــه خـــــو پېغـــــور نـــــه دی د مینـــــې لېونیـــــه
ماتــــــه پېغورونـــــــه د صـــــــنم مـــــــه راکـــــوه

خیـر دی کـه د یـار لـه غمـه مـرم حکیمـه ودې مـرم
بـــس د زړه زخمـــو تـــه مـــې ملهـــم مـــه راکـــوه

دا زه حیـران لـه غمـه لېـونی او غمجـن خـوښ یـم
غـم مـې د یـار خـوښ دی بـل یـو غـم مـه راکـوه.



ابتـــــره راغلـــــه ســـــاه نيـــــولې قســـــم
بـــې پـــروا تېـــره شـــوله غلـــې قســـم

بېګـــاه مـــې خـــوا نـــه بـــې پـــروا تېـــره شـــوه
غـــره د حســـن پـــه ښـــکلا تېـــره شـــوه
لـــه قـــاره شـــنه ښـــکلې لـــيلا تېـــره شـــوه
بيـــا كـــوم ناترســـه قـــارولې قســـم

یوه شغله وه راښکاره غوندې شوه
د عاشقانو ننداره غوندې شوه
کږه وږه شوه کناره غوندې شوه
شوخه هوسۍ چا ځغلولې قسم

په ښایسته مخ یې سره ګلان کرلي
په سپینو لېچو یې ماران روزلي
په کرشمو یې عاشقان وژلي
د زړونو ښکار ته راوتلې قسم

حیرانه خیال وکه سودا د مینې
دا کوم مثال دی په دنیا د مینې
یا حقیقت به وي لیلا د مینې
که مې په خوب چېرته لیدلې قسم.



ســترګو دې بیــا نــاغې پیــدا کړلــې غمجنــې دي
چانــــه ګیلــــه منــــې دې د زړګــــي ســــره

خــاطر دې بیــا ولــې مــلال دی د زړه ســره زمــا
سـترګې دې بیـا نـاغې نـاغې شـوې نـازپروره زمـا
چاتــه لــه درده غانبــچیچي لــري دلبــره زمــا
په مخ دې مړې اوښکې خورې سلګۍ غمجنې دي

زړګی دې ډک دی لـه ګیلـو پـه خولـه ویلـې نـه شـې
د اندېښنـــنو توپـــان د زړه تســـلولی نـــه شـــې
د خواشـینۍ، سـلګۍ پـه شـونډو پټـولی نـه شـې
د غـــم ســـلګۍ دې بیـــا بـــې واره لغـــوړنې دي

د بڼـو څـوکې دې ابتـرې شـوې تسـل بـه غـواړي
لـه اوښـکو ډکې چاتـه برې شـوې تسـل بـه غـواړي
د حیـران خواتـه برابـرې شـوې تسـل بـه غـواړي
لـــه ګیلـــو ډکـــې کرشـــمې دې اندېښـــنې دي.



مخ مې د هجران په لمبو سوی سوی سکور دی
دا زبېښلی رنګ مې ګوره څه له غمه تور دی

هسې نا کردې چې دې زما په ژوندون کړي دي
ستا خمارو سترګو مې د ژوند سرمایې وړي دي
ستا له ظلمه زوره مې اعضا د بدن ستړي دي
هسې دې په ما را اړولي د غم خړي دي
زه په فریاد ناست یم ستا خوښې او لړې چړې دي
دود مې له سر خېژي بل مې زړه کې دغه اور دی

حق ویلی نه شم راسره د هجران وېره ده
تا چې په ما کړې اوس مې هغه کړده هېره ده
دا تعدا لا څه کوې چې تېره لا په تېره ده
خير دې عاقبت وي راته دا ظلم لا چېره ده
دا څنګه ياري ده چې له مينې جفا ډېره ده
ښاد په وصال نه شوم د هجران انديښنه زور دی

زه په ژړا ناست يم ته زما په ژړا خاندې
چا ته ستا له لاسه دا زخمي زړګی کړم وړاندې
هسې نا کردې چې ته زما په ژوندون کاندې
خود دې زه حيران په اور ستي کړم لاندې باندې
ما په سر ګاللي ستا له خوا نه ترخې تاندې
خير که ستا له لاسه مې خراب د زړګي کور دی.



زه چې ژړېږم اشنا هم ژاړي
ټوله دنیا زما په غم ژاړي

د یار له غېږې په ژړا پرېوتم
لکه په ګل کې چې شبنم ژاړي

زړګیه ویلی شه ټوټې ټوټې شه
چې نازولی په حرم ژاړي

زما د ژوند صحنه قلم لیکلې
که حیران نه ژاړي قلم ژاړي.



چاتــــه ښـــــکاره کړمـــــه د زړه زخمونـــــه
اشـــــنا پـــــرې ایښـــــي د جفـــــا داغونـــــه

زمـــــا لـــــه غمـــــه دفترونـــــه جـــــوړ شـــــول
نـــــه شـــــته د یـــــار د غـــــه عمـــــده عرضـــــونه

یـــــو مـــــې لـــــه ځایـــــه زړه پـــــه غـــــم ســـــتي و
ســـــترګو پـــــرې ښـــــخ کـــــړل د ښـــــو ســـــیخونه

زړګـــــی مـــــو مـــــوړ دی پـــــه نعمـــــت د مینـــــې
ســـــبا بیګـــــاه خـــــورم د وصـــــال غمونـــــه

حیرانـــــه زړه دې پـــــه جفـــــا تســـــل کـــــړه
د عاشـــــقانو وي نصـــــیب دردونـــــه



هغــه یــار د مینــې بــې وفــا و پــر ســتم و خــوت
چاتــه فریــادي شــم جفــا کــار زمــا صــنم وخــوت

څــو بــه ســتا لــه لاســه نــازنینې د زړه وینــې خــورم
ســتا د بېرحمــۍ څپېړې زړه بانــدې سـنگینې خــورم
دغــه زمــا حــال دی اند ښنــې دا ســتا د مینــې خــورم
وکـړه یـو نظـر د مینـې سـتا پـه خیـال مـې دم وخـوت

نــور عــالم کــل واړه زنــدگي لــري خنــدا ســره
دا خــو بخــت زمــا دی الــوده غــم و ســودا ســره

زړه زما بلـد شـو اندېښنو ويـر و ژړا سـره
څه وکړمه خدايه په نصيب مې د يار غم وخوت

چاته ستا له لاسه دا زخمي زړګی ښکاره کړمه
ځوک به مې عرض واخلي که ګرېوان پاره پاره کړمه
ستا د ظلم و زوره به نګاره څه چاره کړمه
بس کړه ظلم پرېږده له زخمي زړګي مې نم وخوت

زه حيران مجبور شوم فريادي درته راغلی يم
اور مې په سر بل دی لکه شمع سوزېدلی يم
مرمه نه روغېږم له ډېر درده کړېدلی يم
ولې دې غماز په در کې مانه مقدم وخوت.



درد مې په زړه دی ته ګولۍ راکی د سر ماما
مرض مې ګوره بیا نسخه راکړه ډاکټر ماما

وایم د غاښ معمولي درد لرم نسخه که راکړې
ته د اتو کالو لیکې راته بستر ماما
معاینه خانه کې کښته پورته ګورم هېڅ نه شته
خالي خلتې دي د سبرمو زوړ نیشتر ماما
همدغه وینې مې رګو کې وې چې توی دې کړلې
دا پېچکاري وه که د زوړ غویي وه ښکر ماما
پیسه دار درولې غریب په ټیل وهلو باسې
بیدار ولاړ دی دروازه کې کمبوډر ماما

حیران به څو درته په شعر ستایي د زړه دردونه
خدای دې غریب له زړه نه خپله که خبر ماما.



نه به ژوندی یم نه به ښکلې لیلا بیا ووینم
نه به یې سپینه خولګۍ د که په خندا ووینم

نه به ژوندی یم نه به بیا هغه نازونه کوي
نه به په تورو سترګو پټ اشارتونه کوي
نه به یې سرې شونډې نازک ستونه کوي
نه به د بلې معشوقې داسې وفا ووینم

نه به ژوندی یم نه به بیا هغه خیالونه کړمه
نه به یې تورې زلفې بیا د ناز تالونه کړمه
نه به یې بیا له سپینې غاړې تاو لاسونه کړمه
نه به په خوب کې چېرې هغه تماشا ووینم

نه به ژوندی یم نه به بیا هغه اشنا راشي
نه به مې بیا غېږې ته مسته په خندا راشي

نــه بــه پــه مخــه نــازولې لــيلا بيــا راشـــي
نـه بـه د مينـې ډ کـې سـترګې پـه موسـکا وويـنم

نه بـه ژونـدی يـم نـه بـه بيـا زلفـې تـاوداري کـړي
نـه بـه پـه سـپين جمـال خالونـه لارې لارې کـړي
نـه بـه حيـران تـه راښـکاره سـترګې خمـارې کـړي
پيـدا بـه نـه شـي کـه څلـور کونجـه دنيـا وويـنم.

# د محمد اسمعیل یون لنډه پېژندنه



محمد اسمعیل یــون د حــاجي محمـد خان زوی پـر ۱۳۴۲ل کـال، د لغمان ولایت د الینګـــــار ولســـــوالۍ دنیازیو پـه یوې روښـــــنفکرې کـــورنۍ کـــې زېږېدلی دی.

لـومړنۍ زده کړې یې د الینګار ولسوالۍ د سلینګار پـه لـومړني ښوونځي کې سرته رسولي دي، تر هغه وروسته کابل ته راغی او په خوشال خان لېسه کې شامل شو. پر ۱۳۶۶ل کال له نوموړې لېسې څخه په دویم نومره بریالی او پر ۱۳۶۷ل کـال د کابل پوهنتون د ژبـو او ادبیاتو پوهنځي د پښتو څانګې محصل شو. پـر ۱۳۷۰ل کـال لـه نومـوړې څانګې څخه اول نـومره بریـالی او پـر همـدې کـال بېرتـه د پښتو څانګې د کدر غړی شو. پـر ۱۳۸۵ل کـال پـه نوموړې څانګه

کې د ماسترۍ دوره پیل شوه، یون په ډېر ښه او بریالي ډول دا دوره پایته ورسوله.

محمد اسمعیل یون له ۱۳۷۰ل کال څخه بیا تر ننه پورې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي تدریسي غړی او د(پوهندوی) علمي پوړۍ ته رسېدلی دی، پر استادۍ سربېره، استاد یون د ((کابل پوهنتون))، ((هیلې)) او((شمشاد))مجلو د چلوونکي دنده هم په ښه ډول ترسره کړې ده. په پېښور کې د چاپېدونکې ((معارف)) مجلې کتونکی غړی هم و. همدارنګه دیو شمېر نورو چاپي خپرونو همکار هم پاتې شوی دی.

استاد یون پر ۱۳۸۱ل کال، په جلال اباد کې بېړنۍ لویې جرګې ته د ختیزو ولایتونو د انتخاباتو د دفتر مشر شو، ددې جرګې لپاره تر ټاکنو وروسته د جرګې غړی، بیا د جرګې د غړو له خوا د بېړنۍ لویې جرګې دلومړي منشي په توګه انتخاب شو.استاد یون په دې جرګه کې تر خپل وروستي وسه خپل ملي او تاریخي مسولیت ادا کړ او د هېواد دښمنه عناصرو د توطیو مخه یې ونیوله.

تر دې جرګې وروسته، کله چې د افغانستان د اساسي قانون د تدوین بهیر پیل شو، نو استاد یون بیا ددې بهیر لپاره د ختیزو ولایتونو د دارالانشاد دفتر مشر وټاکل شو. په ختیزو ولایتونو کې د اساسي قانون د لویې جرګې لپاره انتخابات هم د همدې دفتر له

خوا ترسره شول.استاد یون د اساسي قانون د تصویب په لویه جرګه کې د نوموړې جرګې د دارالانشا د غړي په توګه خپل فعال رول ادا کړ. ټاکل شوې وه، استاد یون په ختیزو ولایتونو کې د افغانستان د جمهوري ریاست لپاره د عمومي ټاکنو د دفتر مسول شي، خو په کابل کې د لویو جنګسالارانو او ځینو تنظیمي مشرانو له خوا پر حکومت او ملګرو ملتونو د زیات فشار له امله له کاره ګوښه شو.ملګرو ملتونو(UNAMA) استاد یون ته وړاندیز وکړ، چې په کابل کې به تر دې لوړه دنده ورسپارو، خو استاد یون ونه منله او خپلې استادۍ ته یې دوام ورکړ.

درې کاله وروسته یې د ځینو ملګرو په زیات ټینګار او غوښتنه، د جمهوري ریاست د ملي امنیت شورا په دفتر کې د فرهنګي چارو د ریاست دنده ومنله او په کابل پوهنتون کې پر استادۍ سربېره لا تر اوسه دا دنده پر مخ وړي.استاد یون پر **۱۳۸۵**ل کال د افغانستان او پاکستان د امن ګډې جرګې لپاره د افغانستان له خوا د منشي په توګه غوره شو او دا دنده یې هم په ښه ډول ترسره کړه.

استاد یون د خپلو اکادیمیکو اثارو تر څنګ، د افغانستان د ازادۍ غورځنګ په ګڼو علمي او پلټنیزو څېړنو کې ګډون کړی، په ګڼو چاپي، راډیویي او ټلویزیوني مرکو کې یې د واقعیتونو او حقایقو د څرګندولو لپاره خپل نظر څرګند کړی دی. که څه هم

ډېر خلک د یون لیکنې، مرکې او نظریات خوښوي، خو یو شمېر داسې خلک هم شته، چې د یون سرسختي مخالفین دي. د هغه ملي او ګټورو نظریاتو ته هم غلط رنګ او تعبیر ورکوي، دا ډول اشخاص، چې اکثره یې زورواکي او د سیاسي ډلو ټپلو غړي او مشران دي، د استاد یون نظریات خپلو شخصي او تنظیمي ګټو ته خطر بولي، نو ځکه یې په ټینګه مخالفت کوي. زه ددې شاهد یم، هر کله چې یون کومه لیکنه او مرکه کړې، نو دده پر وړاندې یې مثبت او منفي غبرګونونه دواړه راپارولي دي، منفي غبرګونونه اکثره وخت د هغو اشخاصو او ډلو له خوا وي، چې په تېر کړکېچن سیاسي بهیر کې یې ډېرې نامشروع ګټې ترلاسه کړي او ځانونه یې مطرح کړي دي.

مثبت غبرګونونه اکثره د ولس د مشرانو، روښنفکرانو او نورو مخورو له خوا وي، خو استاد یون په دغسې سختو اغزنو او تنګو شرایطو کې بیا هم خپل فرهنګي، سیاسي او ټولنیز کار ته دوام ورکوي.

دا اوسنی فرهنګي کار، چې تاسو یې اوس په مسلسل ډول ګورئ، دا د تېرو شلو کلونو کارونه دي، چې له تېر یو نیم کال راهیسې پرې په منظم ډول کار شوی، اوډل شوي او دادی ستاسو مخې ته اینبودل کېږي، په داسې یو دولتي دفتر کې چې بوختیاوې په کې

ډېرې وي، د منظم او ستر فرهنګي کار سرته رسول اسانه کار نه دی.استاد یون پر خپلو فرهنګي کارونو سربېره د ګڼو فرهنګي ټولنو د غړي، همکار او موسس غړي په توګه هم خپل فرهنګي رول ادا کړی، په پېښور کې یې د دوو المان مېشتو فرهنګي ټولنو (دافغانستان دکلتوري ودې ټولنې) او(د پښتني فرهنګ د ودې پراختیا ټولنې) د همکار په توګه د بېلابېلو لیکوالو په لسګونو اثار، ایډیټ او چاپ کړي دي. دغه راز یې په سلګونو کورنیو مشاعرو، ادبي غونډو او سیمینارونو کې ونډه اخیستې ده، خپله یې هم په لسګونو مشاعرې، سیمینارونه او علمي ورکشاپونه جوړ کړي دي.

سربېره پر دې، په یو زیات شمېر، ملي او نړیوالو کنفرانسونو کې یې په ښه ډول د خپل هېواد استازي کړې ده. دلته به یې د اثارو یادونه وکړو:

## اثار

### الف- پنځونې:

| کتاب نوم | څرنګوالی | چاپکال |
|---|---|---|
| • مټکور | لومړی شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • په اورونو کې سندرې | دویمه شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |

### ب- راټولونې:

- هیلې          ګڼه شعري ټولګه          دویم ۱۳۸۷
- نیمګړي ارمانونه     د حیران شعري ټولګه     دویم ۱۳۸۷
- د لوونو فصل          ګڼه شعري ټولګه          دویم ۱۳۸۷
- د نازو انا یاد        د سیمینار د لیکنو ټولګه        دویم ۱۳۸۷
- د استاد الفت نثري کلیات   د استاد الفت نثرونه      درېیم ۱۳۸۷
- سیندونه هم مري    د اسحق ننګیال شعري منتخبات     دویم ۱۳۸۷

## ج- ژباړنې:

- د ټولنپوهنې له نظره: په افغانستان کې د واک جوړښتونه
  د پوهنوال روستارتره کي اثر          دویم ۱۳۸۷
- .د افغانستان فرهنګي میراثونو ته یوه کتنه
  د نینسي دوپرې اثر          دویم ۱۳۸۷
- په افغانستان کې د جګړې جنایتکارانو محاکمه
  د پوهنوال روستار تره کی اثر          دویم ۱۳۸۷

## د- یونلیکنې:

- د اماراتو سفر          د اماراتو یونلیک          دویم ۱۳۸۷
- که یون دی یون دی    د اروپا یونلیک          لومړی ۱۳۸۷
- د پنټاګون ترخنډه    د امریکا یونلیک          لومړی ۱۳۸۷

## هـ- څېړنې او شننې:

- د محمد ګل خان مومند اند و ژوند ته یوه لنډه کتنه   دویم ۱۳۸۷
- استاد زیار د پښتني فرهنګ یو ځلاند ستوری     دویم ۱۳۸۷
- د کابل پوهنتون د ادبیاتو پوهنځي پښتو کتابښود     دویم ۱۳۸۷
- د افغانستان فرهنګ ته اوښتي زیانونه     دویم ۱۳۸۷

- د پښتو شعر هندسي جوړښت شپږم ۱۳۸۷
- له افغانستانه د مسلکي کادرونو د فرار عوامل دویم ۱۳۸۷
- ساینسي پرمختیاوې دویم ۱۳۸۷
- بېړنۍ لویه جرګه ولسواکي او زورواکي دویم ۱۳۸۷
- اندیال خوشال لومړی ۱۳۸۷
- هیله د خپلو سریزو په لمن کې لومړی ۱۳۸۷
- کلتوري یون لومړی ۱۳۸۷
- فرهنګي فقر لومړی ۱۳۸۷
- مرکه او مرکې لومړی ۱۳۸۷
- خوشال په خپل ایډیال لومړی ۱۳۸۷
- د کتابونو په ورېمو کې لومړی ۱۳۸۷
- افغانستان په سیاسي کړلېچ کې لومړی ۱۳۸۷
- پښتو لیکنی سمون لومړی ۱۳۸۷
- اوسنۍ رسنۍ لومړی ۱۳۸۷
- که نړیوال ماته وخوري؟ لومړی ۱۳۸۷

خدای (ج) دې استاد یون ته ډېر عمر ورکړي او جرئت دې ورته هم تاند لري، الله (ج) دې دی له هر ډول بدو بلاوو وژغوري، په فرهنګي کارو زیار کې ورته د نور زغم او اوسېلې هیله لرم.

په درناوي

وفا الرحمن وفا

کابل - افغانستان

# nimgəṛi armanuna

## (Uncompleted desires)

Hairan's poems collection

**Collected**
**By:**
**M. Ismael yoon**




د خپرونو لړ: (۲)